


# سخت پوستي
# د چنګاښ کورنۍ



Zakria Rahimi

# Crabs










ژباړونکی: ذکریا رحیمي Translator: Zakria Rahimi

# Crustaceans - د چنګاښ کورنۍ

د ژباړې سرچینه :

https://www.britannica.com/topic-browse/Animals/Crustaceans/1





د ژباړلو موخه: د نړۍ له ټولو سخت پوستو سره د ښوونکو او بیالوجي زده کوونکو بلدتیا؛ د ټولو سخت پوستو انګریزي او سیمه ایزو نومونو سره بلدتیا؛ د سخت پوستو په اناتومۍ کې کارېدونکې انګریزي او لاتیني اصطلاح ګانو پښتو تشریح تر څو پراخې مطالعې ته لار هواره او مرسته پکې وکړي؛ د سخت پوستو چلند، جوړښت، فزیلوجي، ډلبندي او د نړۍ په سیمو کې د وېش ساینسي مطالعه.

# د منځپانګې لښتیال

# مالاکوستراکان - Malacostracan

د مالاکوستراکا کلاس (class Malacostraca) تر ۲۹۰۰۰ زیات غړي دي. د کروستاسیا فرعي فایلم (subphylum Crustacea) او فایلم ارتروپوډا (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي. بې شمزي ژوي دي او په ځمکه، سمندر، تازه اوبو کې ژوند کوي. مالاکوستراکان د کروستاسیا په څلورو عمده کلاسونو کې تر ټولو زیات دي. غړي یې د ټولو سخت پوستو له درې برخو دوه برخې جوړوي. د بدن کچې یې له یو بل سره ډېر توپیر لري او له ۱ ملي متر واړه نیولې تر ۳ متره پورې اوږده شته. د نړۍ په ټولو تل پاتې اوبو کې پرېمانه دي. پرته له انترکتیکا چېرې چې یو وخت شته وو مګر اوس نشته نور په ټولو لویو وچو کې پیدا کیږي.

په مالاکوستراکان کې داسې کوني کبر شته چې له ۱۰ کیلو ګرامه زیات وزن لري، داسې هم شته چې د پښو تر منځ واټن یې له ۳ مترو زیات وي. د ایزو پوډا، امفای پوډا او ستوماتوپوډا ډلو ( orders Amphipoda, Isopoda, and Stomatopoda) کې د ځینو غړو د بدن کچه له ۲۵ تر ۳۰ سانتي متره پورې ده او د نورو غړو منځنۍ کچه یې له ۱ تر ۳ سانتي متره پورې ده. د ځینې پرازیتي ډولونو کچه یې له ۱ ملي متر څخه کمه ده.

مالاکوستراکان د بدن ثابته طرحه لري چې له سر، سینې او خېټې جوړشوی وي. په غټو کې یې سر پنځه برخې لري، سینه کې یې ۸ برخې شته وي او خېټه کې یې ۶ برخې مګر ځینې وخت ۷ برخې موجودې وې. سر یې یوه جوړه ترکیبي سترګې، دوه جوړه انتنونه او درې جوړه د زدولو لپاره د خولې برخې لري. همداسې د خولې د زودولو هره برخه یې دوه څانګې لري. سترګې یې معمولاً رنګدانه لري او د خوځېدو وړ ساقې کې وي. د ملا له پای څخه یې کاراپاس یا قاب وده کوي کوم چې په غټو کې سینه، د پښو پیل او برانشونه پوښلي وي. کاراپاس یې ممکن د خېټې له شا سره نښتی وي لکه په اوفوزید (euphausiids)، دیکاپوډ (decapods) او یا د اوکاریدا دفرعي ډلې (superorder Eucarida) نورو غړو کې، ممکن د خېټه داخلي برخې سره وصل وې لکه په مایزید (mysids) کې، ممکن له منځه تللی وي لکه په ایزوپوډ (isopods)، امفای پوډ (amphipods) او سینکارید (syncarids) کې.

د خېټې ۸ جوړه پښې یې بېراموس یا په دوه څانګو وېشل شوې (biramous) دي. د پښو دوه جوړه خو په ځینو کې له دوه جوړو زیاتې د خوړو لپاره بدلیږي. کوم ډولونه چې ازاد او لامبو وهونکي دي ټولې پښې یې یو بل ته ورته شکل لري. کوم چې د اوبو په تل کې ژوند کوي قدم وهونکي غړي لري. د خېټې اخري جوړې ته یې پېرېپوډز یا پلیو پوډز (pereopods, or pleopods) نومونه اخلي کومې چې اساسا د لامبو وهلو لپاره کاروي. د ځینې ډولونو نران یې یوه جوړه پښې د سپرم د انتقال لپاره کاروي.

مالاکوستراکان اوسمهال کې ژوندي له ۲۹۰۰۰ زیات ډولونه لري کوم چې د سخت پوستو له نیمایي زیاته برخه جوړوي. په مالاکوستراکان کې تر ټولو لویه ډله دیکاپوډا ډله (order Decapoda) ده چې تقریبا له ۱۰۰۰۰ زیات ډولونه لري، دوېمه ډله ایزوپوډا ډله (order Isopoda) ده کومې کې چې تقریبا تر ۱۰۰۰۰ ډولونو پورې شامل دي او درېمه ډله امفای پوډا (order Amphipoda) ده چې تر ۶۲۰۰ پورې ډولونه پکې شامل دي. نورې هرې ډلې کې له ۱۰۰۰ کم ډولونه ډلبندي شوي.

دژوند دورو کې یې لمړۍ دوره د هګۍ دوره (egg stage) وي، دوېمه دوره یې ازاده لامبو وهونکې دوره (free-swimming) ده، درېمه دوره یې پر پلانکټون د تغذیې دوره (-plankton feeding larval stages) - په دې دوره کې د دیاتوم، سخت پوستو او پروتوزوان واړه

مایکروسکوپي بیچیان کوم چې د اوبو په سرکي ګرځي او یا سمندر او تازه اوبو کې لامبو وهي د اوبو فلټر کولو له لارې په پلانکټون ځان تغذیه کوي.
د ځوانۍ دوره په کومه دوره کې یې چې بشپړ وده نه وي کړې او د ودې په حال کې وي (immature, subadult, growth stages)، بله دوره یې د مثل د تولید دوره ( sexually mature, reproductive, adult stage) ده کومې کې چې دې ژو بشپړ وده کړې وي.

د ایزو پوډ په ځینو ډولونو کې نر په خلاصو اوبو کې ښځې پسې تګ کوي، د جنسي نزدیکت وخت یې ډېر کم وي تقریبا څو ثاني وخت نیسي. د هګیو له کیسې (ovary) څخه چې کله د هګیو وېستونکې نل (oviduct) څخه هګۍ بهر باسي نو القاح شوې وي. په ډېرو ډولونو کې نر له جنسي نزدیکته وروسته بیا خوراک نکوي، بیا جنسي نزدیکت نکوي او تر ډېره وخته ژوندی هم نه پاتې کیږي. القاح شوې هګۍ ممکن په سمندر کې ازادې پرېښودل شي او ناوپلیوس لاروای ( nauplius larvae) بچیان ترې پیدا شي. ځینې هغه سمندري ډولونه چې په لامبو وهونکو پښو (pleopods) پسې خپلې هګۍ نښلوي د مردارو شو حیواناتو جسد خوړونکي ډولونه دي. لاروای بچیان یې یا په لامبو وهلو د اوبو تل ته کوزیږي او یا د اوبو تل ته ډوبیږي او د ځوانۍ دورې ته تر رسېدو مخکې څو لاروای دورې بشپړوي. کوم بچیان چې نا بشپړ پیدا کیږي او نوره وده د مور په بدن کې په یوه کڅوړه کې کوي لاروای دورې نلري.

کوم ډولونه یې چې غټ بدن لري او د سمندر په تل کې ژوند کوي جنسي نزدیکت یې تقریبا څو ساعته وخت نیسي. نر یې له جنسي نزدیکته وروسته خواږه خوري، بیا جنسي نزدیکت کوي، د بدن پوستکی بدلوي. واړه بچیان یې ډېر وخت له پیدا کېدو وروسته مور له ځان سره ساتي.

مالاکوستراکان اساسا لامبو وهونکي دي، په دوېمه درجه قدم وهونکي، په توکو پسې نښتونکي او غارونه وېستونکي دي. د هر ډول په وړو او غټو کې د لامبو وهلو لپاره کارېدونکي غړي او طریقه توپیر لري.

مالاکوستراکان هر ډول موجود اورګانیک توکي خوري، مړه یا ژوندي ژوي او په بوټو ځان تغذیه کوي. له وړو ژو تر منځنۍ کچې پورې ژوي، پلانکټون او خوسا شوي توکي خوري. او ځینې ډولونه یې د اوبو په نورو ژو کې پرازیت کیږي. غټ مالاکوستراکان په مردارو شو ژو او وړو شمزي لرونکو لکه کبان او داسې نورو ځان تغذیه کوي. کوم چې واړه دي او کندې باسي د اوبو په فلټر کولو ځان تغذیه کوي. کوم چې په وچه کې ژوند کوي الګې او د ځنګلونو پاڼې خوري.



# امفای پوډ – Amphipod

ټول هغه بې شمزي یا غیرې فقاریه (invertebrate) چې د امفیوپودا ډله ( order Amphipoda) او کروستاسیا په کلاس (class Crustacea) کې شامل دي، د سمندرونو په ټولو برخو کې، سیندونو، بندونو او د ځمکې لاندې برخه اوبو کې ژوند کوي. سمندري امفای پوډ چنګاښ د سمندر په ۹۱۰۰ متره (۳۰۰۰۰ فټه) ژوروالي کې پیدا کیږي. کوم چې په تازه اوبو او سمندر کې ژوند کوي په انګرېزۍ کې د سکډ (scuds) نوم هم ورته اخلي، او کوم چې د شګې لرونکو ساحلونو کې پیدا کیږي د شګې حشره یا د شګې ګونګټه (sand hoppers, or sand fleas) نومونه ورته اخلي. تر اوسه د امفای پوډ چنګاښ ۶۰۰۰ ډوله مطالعه شوي. تر ټولو سیمو د ډبریزو سمندر غاړو سره پریمانه پیدا کیږي (په یو متر مربع ځای کې ۱۰۰۰۰ چنګاښ یا په یو فټ مربع کې ۱۰۰۰ چنګاښه شته وي). ډیر وخت یې ځیني خلک له اوبلن یا د اوبو ملخ (shrimp) سره توپیر نکوي ځکه چې یو بل ته ورته دي. امفای پوډ چنګاښ د کبانو، بې شمزیو (invertebrates)، د پنګوین مرغانو (penguins)، د سمندر غاړو د مرغانو یا د سیتاسیېن کبانو لکه ډولفین، نهنګ او داسې نور (cetaceans) لپاره اړین خواړه دي.
د امفای پوډ چنګاښ د بدن کچه له ۱ تر ۱۴۰ ملي متره (۰,۰۴ تر ۵,۵ انچه) پورې رسیږي. رونښانه رنګونه لري لکه ګلابي، سور، زېړ، شین او نیله. په خیټه کې درې جوړه ضمیمې لري چې امفای پوډ ته د چټکې لامبو وهلو وړتیا ورکوي. تر ټولو ښه ټوپ وهونکي یې د شګې ګونګټې (sand fleas) دي.

انتنونه یا ښکرونه (antennae) اوږده او وېښته لرونکي دي. سر او پای یې ډېر وخت لاندې خوا ته پای ته رسېدلي وي یا لاندې خوا ته تاو شوي وي. په انګرېزۍ کې یې د بدن جوړښت ته سیسیل (sessile) وایي (سیسیل بې خوځښته چنګاښ ته وایي چې ځای پر ځای ناست وي). د ځینو ډولونو خوله یې پنسونه او د خولې لګونې برخې لري, د هغو سمندري ژو پر سطحه پیدا کیږي چې بې شمزي دي او حرکت نکوي لکه سینیداریان (cnidarians). د سمندري ډول د یوې کورنۍ چېلوریدای (Cheluridae) غړي یې لرګي زدویي او تل له ایزوپود سره نښتي پیدا کیږي. د امفای پوډ چنګاښ برانشونه (gills) په یو ډول کاسې پوښل شوي وي چې د (coxae) په نامه یادیږي کوکسي (coxae) د حشرو د ورانه یا پتون پوښ یا هډوکي ته وایي.

د نر او ښځې د بدن جوړښت یې له یو بل سره توپیر لري: د نر د خېټې په دویمه برخه کې یې پښې اوږدې دي، د پښو دې جوړې ته په انګرېزۍ کې (gnathopods) وایي. نر یې خپل سپرم یا د سپرم توپونه (spermatophores) بهر ته پرېدي تر څو هغه هګۍ القاح کړي چې ښځې اچولې وي ( دښځې اچول شوې هګۍ او سپرم د دواړو له بدن څخه بهر القاح کیږي).

د هګیو شمېر یې له ۱ تر ۲۵۰ پورې وي، هګۍ یې له ۲ تر ۵۲ ورځو پورې په بچیانو بدلیږي او پیدا شوي بچیان یې له ۲ تر ۳۵ ورځو پورې د هګیو په کیسه کې پاتې کیږي. بچیان یې له یوې تر څلورو میاشتو مودې کې جنسي بلوغ ته رسېدای شي. د ځینې سړو اوبو ډولونه یې تر یوکال پورې ژوند کوي. د امفای پوډ چنګاښ جنیتیکي توپیر د ګرمو اوبو په پرتله په سړو اوبو کې زیات ده، له ۲۹۰ ډولونو څخه زیات یوازې د سایبریا په بایکال جهیل کې شته دي. فوسیلي امفای پوډ ډېر کم پیدا شوي تر اوسه یې ۶ فوسیلي نسلونه پیژندل شوي چې د ایوسین وخت امفاپوډ دي (له ۴۸,۶ میلیونه تر ۵۵,۸ میلیونه کاله وړاندې تر منځ) فوسیلي نسلونه یې د اوسني کرنګونېکس ( genus Crangonyx) نسل ته ورته والی لري.



# برنکل صدف - Barnacle

د سرېپېډ (cirripede) په نامه هم پېژندل کیږي. عمدتا له ۱۰۰۰ څخه زیات ډولونه لري، سمندري چنګاښونه دي، د سیرېپېډیا فرعي ډله (subclass Cirripedia) کې ډلبندي شوي. برنکل بې حرکته ژوند لري، تقریبا ۲۶۰ ډوله یې د نورو چنګاښونو او سخت پوستو داخلي پرازیت دي.
کله چې برنکل غټ شي د کلسیم په قاب (calcareous plates) پوښل شوي وي. په سمندري بیړیو، په سمندر کې پرېښودل شو لرګیو، ډبرو او یا غټو سمندري ژو لکه نهنګ پسې ځان نښلوي. په خپلې پېچکې چې د سیري (cirri) په نامه یادیږي واړه خواړه رانیسي.

سیرېپېډ یا برنکل هېرما فرودیت (hermaphrodites) دي په دې مانا چې په یو وخت کې دواړه نر او ښځه د نر او ښځې د مثل د تولید غړي لري. ځینې ډولونه یې خپله کې د جنسي نزدیکت لپاره سره نښلي چې په دې ډولونو کې نر او ښځه جلا وي خو په یوازې ځان هم کله کله د مثل تولید کوي. هغو لاروای بچیانو ته چې ازاد لامبو وهونکی ژوند لري نوپ لي (nauplii) نوم اخلي. مخکې تر دې په سایپریس (cypris) شکل بدل شي شپږ نوپ لیري (naupliar stages) پړاونه یا مرحلې ترسره کوي. سایپریس (cypris) یې هم لاروال دوره ده خو په دې دوره کې خپل ځان نه تغذیه کوي او په دې دوره کې د پروتین له مادې جوړ سره نښتی صدف ډوله پوښ لري. په لمړي انتن یا ښکر (antennules) باندې سمنټ شوی مرغړی لري، په خېټه پورې نښتې پښې (cirii) لري چې د لامبو وهلو لپاره یې کاروي. په سایپریس دوره کې ممکن خپل ځان په یو څه پورې ونښلوي او یا خپل ځان په یوه مېزبان (host) کې ځای کړي.
معمولي برنکل چې د توراسیا ډله (order Thoracica) ده تقریبا ۸۰۰ ډولونه لري شپږ جوړه پښې لري، پوره یا نیم بشپړ شوی صدفي پوښ لري.

# نیله کوني کبر - Blue crab

د کالینکتېس نسل (genus Callinectes) ده، د چنګاښ د کورنۍ ټول هغه غړو ته وېل کیږي چې د دیکاپودا په ډله (order Decapoda) کې شامل دي او همدا ډله د فیلوم ارتروپوډا (phylum Arthropoda) په نامه هم يادیږي. دا نوم په ځانګړې توګه د کالینکتېس ساپیدوس (Callinectes sapidus) او کالینکتېس هستاتوس ( Callinectes hastatus) لپاره کاریږي. د غربي اتلانتیک سمندر غاړې دخوړو وړ (edible) عام چنګاښ ګڼل کیږي. په هغو سمندر غاړو کې ژوند کول خوښوي چې لاندې خوا ته پېچومی لري، ختّه لري د سیندونو یو ځای کېدو ځایونو کې هم پیدا کیږي.

پاسه برخه يې نیله رنګ، لاندې خوا يې سپين رنګ لري، د بدن اوږدوالی يې تر ۷,۵ سانتي متره (۳ انچه) پورې او سور یا بر يې له ۱۵ تر ۱۸ سانتي مترهپورې رسیږي. د بدن د غړو هره خوا يې بهر ته وتلي ازغي ډوله شکل لري، په یو اړخ بل اړخ له سترګو تر پای پورې د ازغیو شمېر ۸ ده. پنځه جوړه ډبلي شوې پښې لري چې د لامبو وهلو وړتیا ورکوي. په مردار شوو ژو ځان تغذیه کوي. لاروای بچیان يې د زوپېل (zoeal) په نامه له څو لاروای مرحلو تېریږي. له لاروال دورې وروسته د شکل تغیر (metamorphosis) کوي تر څو د چنګاښ شکل ته بدل شي.



# Branchiopod - برانکیو پوډ

برانکیوپوډ نوم د براکیوپوډا کلاس (class Branchiopoda) ټولو ۸۰۰ ډولونو ته کاریږي. همدا کلاس د کروستاسیا فرعي فیلوم (subphylum Crustacea) او د ارتروپوډا فیلوم (phylum Arthropoda) هم ګڼل کیږي. په اوبو کې ژوند کونکي ژوي (aquatic) دي چې د مالګینو اوبو د اوبو ملخ (brine shrimp)، ښاپیری د اوبو ملخه (fairy shrimp)، د چونګښي بچیانو ته ورته د اوبو ملخ ( tadpole shrimp)، د اوبو ګونګټې (water fleas) او نور واړه د تازه اوبو شکلونه پکې شامل دي.

ګمان کیږي چې برانکیوپوډ لومړني چنګاښونه دي. د ډې وونین مودې ( Devonian period) فوسیلي جسدونه یې هم موندل شوي (له ۳۵۹,۲ میلیونه تر ۴۱۶ میلیونه کاله وړاندې ترمنځ). د برانکیو پوډ ښاپیری د اوبو ملخه (fairy shrimp) چې د انوستراکا انفرا ډله (infraorder Anostraca) ده په موقتي ډنډونو کې پیدا کیږي. انفرا ډله په طبقه بندی کې له فرعي ډلې لاندې ډلې ته وایي.

تر ټولو واړه یې په امنوپوډ (anomopods) کې پیدا کیږي کوم چې تر ۰,۲۵ ملي متره (۰,۰۱ انچ) پورې اوږدوالی لري. تر ټولو غټ یې برانکینېکتا ګیګاس (Branchinecta gigas) یا ښاپیری ډوله د اوبو ملخان دي چې اوږدوالی یې تر ۱۰ سانتي متره (۳,۹ انچه) پورې رسیږي. په فوسیلي ډله کې کازاکارترا ډله ( order Kazacharthra) تر ۱۰ سانتي متره (۳,۹ انچه پورې) وو.

برانکیوپوډا په لسو ډلو کې سره وېشل شوي چې دوه ډلې یې له منځه تللي او یوازې په فوسیلي یادون یا ریکارډ کې موجودې دي. له یو بل سره یې شکلونه خورا زیات توپیر لري: د بېلګې په توګه په لایوي کوداتا (Laevicaudata) کې د تنې یا بدن برخې ثابتې پاتې کیږي، د ښځې په تنه کې یې ۱۲ جوړې پښې او د نر په تنه کې یې ۱۰ جوړې پښې موجودې وي. په سپیني کوداتا (Spinicaudata) کې د تنې برخې توپیر لري. همداسې په سي ټېنو پوډا او انوموپوډا انفرا ډلو (Ctenopoda and Anomopoda) کې کاراپاس یا کاسه موجوده وي خو کاسه یې یوازې تنه پوښلی شي. په اوني کوپوډا او هپلوپوډا انفرا ډلو (infraorders Onychopoda and Haplopoda) کې کاراپاس یا کاسه تنه نه وي پوښلې بلکې یوازې په ملا کې د کیسې شکل جوړوي.
همداسې انوستراکان (anostracans) یې کاراپاس یا کاسه نلري او سترګې یې په سر کې واقع وي. دوه فوسیلي ډلې یې هم له یو بل سره ډېر توپیر لري: لیپوستراکا فوسیلي ډلې (order Lipostraca) کاراپاس نه درلود خو د بدن ۱۳ جوړه غړي او یوه جوړه انتنونه یا ښکرونه (antennae) یې لرل کوم یې چې ممکن د لامبو وهلو لپاره کارولي وي. کازاکارترا فوسیلي ډلې (Kazacharthra) بشپړ وده کونکی کاراپاس یا د ساتنې کاسه (carapace) لرله او په خېټه پورې نښتي شپږ جوړه د بدن غړي لرل.

برانکیوپوډ خپل ژوند د نوپلیوس (nauplius) په توګه پیل کوي (د ژوند د یوې مرحلې یا پړاو نوم ده) کوم چې نا وېشل شوی مثلثي بدن لري، درې جوړه ضمیمې لري: لمړي انتتونه (antennules)، انتتونه (antennae) او د ژامې برخه (mandibles). خپل انتتونه یا ښکرونه د لامبو وهلو لپاره کاروي. خواړه خوري او وده کوي او په تدریجي توګه د غټ شکل ته بدلیږي په دې مانا چې بدن یې په برخو وېشل کیږي او بدن کې یې اضافي غړي وده کوي.



## د مالګینو اوبو ملخ - Brine shrimp

د ارتېمیا نسل (genus Artemia) ده، ټول هغه واړه چنګاښونه پکې شامل دي چې د انوستراکا ډله (order Anostraca) او برانکیوپوډا کلاس ( class Branchiopoda) کې ډلبندي شوي. د ټولې نړۍ په هغو اوبو کې ژوند کوي چې ډېرې مالګینې وي. په ( Great Salt Lake) کې د ارتېمیا سالینا ( Artemia salina) په نامه ډول ډېر زیات ده کوم چې سوداګریز ارزښت هم لري، واړه بچیان یې په اکواریمونو (aquariums) کې د کبانو لپاره د خوړو په توګه کارېږي. د مالګینو اوبو ملخ تر ۱۵ ملي متره (۰,۶ انچه) پورې اوږده شته، سر یې لاندې لور ته تاو شوی وي او لاروال نوپلیوس (nauplius) سترګې لري. خېټه یې پاښې ته ورته غړي لري، د خېټې شکل یې استوانی اي ده. خواړه یې اساسا شین الګی ( green algae) ده کوم چې د خپلو پښو په ذریعه له اوبو څخه فلټر کوي.



# سیریپېډ - Cirripede

ټول هغه سمندري چنګابښون دي چې په سیریپېډیا انفرا کلاس ( infraclass Cirripedia) کې او په کروستاسیا فرعي فیلوم (subphylum Crustacea) کې ډلبندي شوي. تر ټول زیات نامتو او پېژندل شوی یې برنکل صدف ده. غټ یې په سمندري بې شمزیو ژو کې پرازیت دي لکه په ستوري کب (starfish)، کوني کبر، سمندري ناوې (jellyfish) کې. تر اوسه پورې د سیریپېډ ۱۰۰۰ ډولونه مطالعه شوي.






# منګوله یا صدف د اوبو ملخ - Clam shrimp

په انګرېزۍ کې ورته (claw shrimp) نوم هم اخلي، ټول هغه چنګاښونه دي چې په کانکوستراکا ډله (order Conchostraca) او برانکیوپوډا فرعي کلاس (subclass Branchiopoda) کې ډلبندي شوي. تقریبا ۲۰۰ ډولونه لري چې د ټولې نړۍ په موقتي ډنډونو، جهیلونو، تازه اوبو کې ژوند کوي. صدف د اوبو ملخ نوم ځکه پرې اېښول شوی چې ټول بدن یې په منځ دوه کېډونکي صدف کې نغښتی. د صدف داخل کې د دې ژوي بدن ۲۸ جوړه غړي لري کوم چې د مایکروسکوپي خوړو د فلټر کولو او د حرکت (locomotion) لپاره کاروي (په هغو ډولونو کې چې لامبو وهي). نر یې لمړي دوه غړي د جنسي نزدیکت پر وخت د ښځې د رانیولو لپاره کاروي. تر ټولو غټ یې تر ۲ سانتي متره پورې اوږدوالی لري. په فوسیلي یادون یا ریکارډ کې پرېمانه دي. فوسیلي نسلونه یې د سیلورین دورې ( Silurian Period) دي (له ۴۱۶ میلیونه تر ۴۴۸ میلیونه کلونو وړاندې تر منځ).



# ناریال یا کوپره چنګاښ - Coconut crab

د غل چنګاښ (robber crab) په نامه هم یادیږي. د ډول نوم یې بیرګوس لاترو (Birgus latro) ده، د شپې لخوا په وچه کې ژوند کوونکی چنګاښ ده چې د ارام سمندر په سویل غرب او د هند سمندرګي په سیمو کې ژوند کوي. له پاچا او منزوي چنګاښ (hermit crab and king crab) سره ډیر نږدې تړاو لري. غل چنګاښ په دیکاپوډوا ډله (order Decapoda) او کروستاسیا کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوی. غټ یې تر یو متر (۴۰ انچه) پورې اوږدوالی او تر ۴,۵ کیلو ګرامه (۱۰ پونډه) پورې وزن لري. د بدن رنګ یې له بانجاني او ارغواني تر نصواري پورې شته. تازه غټ شوي یې نصواري رنګ لري او په پښو یې تور خالونه موجود وي.

ناریال چنګاښ په مردارو شو حیواناتو او میوې ځان تغذیه کوي له دې پرته د نورو چنګاښونو صدف هم تیږوي کوم چې له کلسیم څخه جوړ شوي وي. خپل پنسونه چې د کیلای (chelae) په نامه یادیږي د کوپرې ماتولو لپاره کاروي. تر ټولو غټ ناریال چنګاښ په خپلوپنسونو ۳۳۰۰ نیوټنه ځواک (۷۴۲ پونډه ځواک) کارولی شي. د کوپرې یا ناریال د ماتولو لپاره ونې ته خیژي او له هغه ځایه کوپره راغورزوي، یا یې په پنسونو کې نیسي او په ځمکه یې وهي له دې پرته خپل پنسونه هم د کوپرې د پوستکي د شکولو لپاره کاروي.

ښځه یې رسیدلې یا پخې شوې هګۍ (ripe eggs) په سمندر کې پریږدي چې په فوري توګه مایکروسکوپي زویس لاروای بچیان (zoeas) تر جوړیږي، زویس یې لمړی لاروا پړاو ده کوم چې په اوبو کې ژوند کوي او په وړو اورګانیزمونو یا غړو ځان تغذیه کوي. له ۲۰ تر ۳۰ ورځو پورې زویس وده کوي او په ګلوکوتوی (glaucothoe) بدلیږي چې دا یې منځنی پړاو یا مرحله ده. په دې پړاو کې سمندر پریږدي او د درې یا څلور اونیو لپاره په سمندري صدفونو کې پټیږي. له دې مودې وروسته دغه صدفونه پریږدي او په شګه کې ځان خښوي چې له راوتو وروسته په واړه چنګاښ بدلیږي. ناریال یا کوپره چنګاښ د ورځې لخوا په ۶۰ سانتي متره (۲ فټه) ژورو غارونو کې پټیږي او د شپې لخوا خوړو پسې راوځي. په کومو سیمو کې چې دا چنګاښ پیدا کیږي د هغو سیمو خلک یې د خوړو وړ ګڼي.

# کو پیپوډ چنګاښ - Copepod

د کوپیپوډا فرعي کلاس (subclass Copepoda) چنګاښونه دي. ایکولوجیکي ارزښت لري، د ډېرو سوداګریزو کبانو لپاره خواړه دي، تقریبا ۱۳۰۰۰ ډولونه لري چې ډېری ازاد یا ګرځېدونکی ژوند کوي. سمندري شکلونه یې د ټولې نړۍ په سمندرونو کې پیدا کیږي. ځینې ډولونه یې په تازه اوبو کې هم شته دي. ځینې ډولونه یې پرازیتي دي لکه د اوبو ګونګټه (Water fleas) چې مایکروسکوپي کچه لري او د انسان بدن ته د اوبو د څښلو له لارې داخلیدای شي.

د ډېرو د بدن کچه له ۰,۵ تر ۲ ملي متره پورې ده، تر ټولو غټ ډول یې پینېلا بالا اېنوپټېرا (Pennella balaenopterae) ده چې تر ۳۲ سانتي متره پورې اوږدیږي او د نهنګ پرازیت ګڼل کیږي؛ تر ټولو وړوکی ډول یې سفایرونېلوپسیس مونو تریکس (Sphaeronellopsis monothrix) ده چې د بدن اوږدوالی یې تر ۰,۱۱ ملي متره پورې وي او د سمندري اوستراکوډ (ostracod) پرازیت ګڼل کیږي.

ترکیبي سترګې نلري، کاراپاس یا کاسه (carapace) نلري. دځینې ډولونو خواړه یې مایکروسکوپي بوټي او ژوي دي، ځینې د خپلې کچې نور ژوي ښکار کوي. کوم چې پرازیتي ډولونه دي د مېزبان نسجونه زبېښي. ډېر ډولونه یې د جنسي نزدیکت له لارې د مثل تولید کوي خو ځینې ډولونه یې د پارتېنو جنسیس (parthenogenesis) له لارې د مثل تولید کوي په دې مانا چې بچیان یې له هغو هګیو پیدا کیږي چې د نر لخوا القاح شوي نه وي. په پښتو کې ورته خاکي بچیان وایي.



# کوني کبر - Crab

په .(brachyurans) ټول د لنډې لکۍ چنګاښونه دي په ځانګړې توګه براکيورن (phylum Arthropoda) او ارتروپوډا فيلوم (order Decapoda) ديکاپوډا ډله (infraorder کې ډلبندي شوي. براکيورن د چنګاښ کورنۍ براکيورا انفرا ډله Brachyura) ده چې ريښتينی چنګاښ ګڼل کيږي خو له دې پرته انوموران شکلونه هم پکې شامل دي، انوموران د انومورا فرعي ډله (anomurans) (suborder Anomura) ده. انفرا ډله په ډلبندۍ کې له فرعي ډلې لاندې ډلې ته وايي. تر اوسه يې ۱۰۰۰۰ ډولونه مطالعه شوي. کوني کبر چنګاښ په سمندر، تازه اوبو کې او په ځمکه ژوند کوي. د پښو لمړۍ جوړه يې په پنسونو بدليږي، کاراپاس يا ساتونکی کاسه يې پراخه وي. ډېر په سمندر کې ژوند کوي حتی هغه چې د ګرمو سيمو په ځمکه کې ژوند کوونکي دي سمندر ته کوزيږي او ډېری يې خپله لاروال دوره په سمندر کې تېروي.



## د خوږو اوبو چنګاښ یا اغزن چنګاښ - Crayfish

په انګریزۍ کې ورته (crawfish or crawdad) نومونه هم اخلي. مختلف ډوله چنګاښونه دي چې د دیکاپوډا ډله (order Decapoda) او د ارتروپوډا فیلوم (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي. درې کورنۍ جوړوي چې یوه د شمالي نیمې کرې کورنۍ ده او د استاسیدای کورنۍ (families Astacidae) په نامه یادیږي اودوه نورې د جنوبي نیمې کرې کورنۍ دي چې د پاراستاسیدای کورنۍ ( family Parastacidae) او اوستروااستراسیدای کورنۍ (family Austroastracidae) په نامه یادیږي. تقریبا ۵۰۰ ډولونه لري چې تر نیم زیات یې په شمالي امریکا کې ژوند کوي. او ډیری یې په تازه اوبو کې ژوند کونکي دي خو یو څو ډوله یې په مالګینو اوبو کې هم شته دي.

دخوږو اوبو چنګاښ په برخو ویشل شوی بدن (segmented body) لري، د بدن رنګ یې زیړ بخن شګو ته ورته، شین، سور او یا تیز نصواري وي. تېره اوربوز یا پوز او ترکیبي سترګې لري. د بدن بهرنۍ پوښ (exoskeleton) یې نرۍ خو کلک ده، پنځه جوړه پښې لري چې لمړۍ جوړه یې پنسونه دي کومو ته چې کیلای (chelae) نوم اخلي. خپلې پښې د لامبو وهلو لپاره او د اوبو د تاوولو لپاره کاروي تر څو ساه واخلي.

د بدن کچه یې توپیر لري خو د ډیرو اوږدوالی تر ۷,۵ سانتي متره (۳ انچه) پورې وي، تر ټولو واړه یې د کامبریلوس دیمینوتوس (Cambarellus diminutus) په نامه دي چې تر ۲,۵ سانتي متره پورې اوږدیږي او تر ټولو غټ یې د استاکوپسیس ګولدي (Astacopsis gouldi) په نامه دي چې تر ۴۰ سانتي متره پورې اوږدوالی او تر ۳,۵ کیلو ګرامه پورې وزن لري.

د خوږو اوبو چنګاښ په سیندونو او بندونو کې پریمانه پیدا کیږي چې ډیر وخت خپل ځان د ډبرو او یا نورو توکو لاندې پټوي. په شپه کې تر هر وخت ډیر فعال وي. خواړه یې چونجیان، حلزون، د حشرو لاروای بچیان، د دوه ژواکو یا ذوحیاتین بچیان دي خو ځینې یې په شنو ځان تغذیه کوي. د جنسي نزدیکت موده یې په مني کې ده او په پسرلي کې هګۍ کوي. هګۍ یې د ښځې په خیټه پورې نښتې وي چې له پنځه تر اته اونیو پورې په بچیانو بدلیږي او بچیان یې د څو اونیو لپاره له خپلې مور سره پاتې کیږي. جنسي بلوغ ته له څو میاشتو تر څو کلنو پورې موده کې رسیږي چې هر ډول کې توپیر لري. په هر ډول کې عمر کول توپیر لري چې له یو کال تر ۲۰ کلو پورې ژوندي پاتې کیدای شي.


Crayfish - Dorsal View
eye
cervical groove
uropod
carapace
rostrum
antennule
antenna
abdomen
2 3 4 5
telson
chelipod
legs



# د چنګاښ کورنۍ یا کلک پوستي - Crustaceans

د کروستاسیا فرعي فیلوم (subphylum Crustacea) هغه ټول غړي دي چې په چې په ارتروپوډا فیلوم (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي. فیلوم یا فایلم په طبقه بندۍ کې له پاچایي (kingdom) ښکته او له کلاس (class) څخه پورته کټګورۍ یا وېشنیزې ته وایي. د بې شمزیو یا غېرې فقاریه یو ګروپ ده چې تقریبا ۴۵۰۰۰ ډولونه پکې شامل دي کوم چې د نړۍ په مختلفو برخو کې ژوند کوي.تر ټولو زیات پېژندل شوي چنګاښونه کوني کبر(crab)، استوانه اي چنګاښ (lobster)، د اوبو ملخ (shrimp) او دلرګیو سپګې (wood louse) دي خو له دې پرته د چنګاښ کورنۍ کې خورا زیات نور ډولونه هم شامل دي کوم چې تر مسلکي خلکو پورې محدود دي.
چنګاښ له نورو ارتروپوډ (arthropods) سره توپیر لري: توپیر یې دوه لمړۍ پښې دي چې په پښسونو بدلیږي (antennules and antennae)، بل توپیر یې له خولې سره دوه وړې ضمیمې دي چې د ژامو په توګه یې کاروي.

د چنګاښ په کورنۍ کې تر ټولو ستره ډله دیکاپوډا (Decapoda) ده په کومه کې چې د چنګاښ ۱۰۰۰۰ مختلف ډولونه شامل دي. په دې ډله کې د امریکا استوانه اي چنګاښ (American lobster) شامل ده کوم چې تر ۲۰ کیلو ګرامه (۴۴ پونډه) وزن کوي، د جاپان غټه کوني کبر (Japanese spider crab) پکې شامل ده چې پښې یې تر ۳,۷ متره (۱۲ فټه) پورې پراخې دي، تر ټولو واړه ډولونه یې د اوبو ګونګټې ( water fleas) دي او په دې ګونګټو کې الونېلا (Alonella) تر ۰,۲۵ ملي متره (۰,۰۰۹ انچه) پورې اوږدوالی لري.

د چنګاښ د کورنۍ ډولونه په تازه اوبو کې، سمندر کې او په ځمکه ژوند کوي؛ ځینې ډولونه یې په داسې مالګینو اوبو کې هم شته چې مالګه یې د سمندر په پرتله څو ځلې زیاته وي. ځینې ډولونه یې د سمندر په تل کې ژوند کوي، ځینې لامبو وهونکي په بندونو کې دي. د ایزوپوډا او امفای پوډا ډلو (orders Isopoda and Amphipoda) ځینې ډولونه یې د سمندر په ۱۰۰۰۰ متره ژورو کې موندل شوي. د چنګاښ کورنۍ غړي د ټولې نړۍ په بندونو او سیندونو کې کالونۍ لري، په هغو بندونو کې هم شته چې د سمندر له سطحې ۵۰۰۰ متره لوړ دي.

د چنګاښ کورنۍ کې ځینې د کوني کبر ډولونه دوه ژواکي دي او له اوبو څخه په مردارو شوو ژو پسې د ځان تغذیه کولو لپاره راوځي. د کوني کبر ځینې ډولونه ونې ته د ختلو وړتیا هم لري. ځینې ډولونه یې له اوبو څخه د ډېرې مودې لپاره لرې ژوند کوي خو د هګیو اچولو پر وخت بېرته سمندر ته کوزیږي او لاروای بچیان یې هم په سمندر کې لاروال دوره تېروي چې د ځمکې کوني کبر نوم ورته اخلي. هغه چنګاښونه چې بیخي په وچه کې ژوند کونکي دي د لرګي سپګې دي کومې چې په ایزوپوډا ډله ( order Isopoda) او اونیسکوایدیا کورنۍ (family Oniscoidea) کې ډلبندي شوي. په نمناکه ځایونو کې ژوند کوي. د ایزوپوډ ځینې ډولونه په صحراګانو کې هم شته.

د چنګاښ د کورنۍ په ډېرو ډولونه کې جنس جلا نه وي. د برنکل ډېر ډولونه هېرمافروډیتیزم (hermaphroditism) لري په دې مانا چې یو برنکل دواړه د نر او ښځې جنسي غړي لري. د برنکل کوم ډولونه چې نر لري نران یې ډېر واړه دي او خپل ځان په غټ برنکل پسې نښلوي تر څو یې هګۍ القاح کړي. د نوتوستراکا ډلې ځینې غړي لکه د چونګښې بچې ته ورته د اوبو ملخ (tadpole shrimps) هم هېرمافروډیت (hermaphrodite) دي؛ د هګیو کیسه (ovary) کې یې چې کومې هګۍ د ودې په حال کې وي د دې هګیو ترمنځ تیت یا خپاره شوي د سپرم تولیدونکې نرمۍ موجودې وي. د اوبو د ملخ په ځینې ډولونو کې جنسیت خپله بدلېدونکی وي د بېلګې په توګه پاندالوس مونتاګي ډول (Pandalus montagui) چې د دیکاپوډا ډلې غړي دي د نر په توګه ژوند پیل کوي خو له ۱۳ میاشتو وروسته په ښځې بدلیږي. هغه ایزوپوډ چې د ریسکوتوایډ نسل (genus Rhyscotoides) کې شامل دي له زړېدو سره یې جنسیت له نر څخه ښځې ته بدلیږي.

د ځینې ډولونو نران ډېر واړه خو ښځې یې ډېرې غټې وي او نران یې د ښځې په تناسلي جهاز (genital tract) کې پټ وي؛ په پرازیتي ډولونو کې دا ډول نران ډېر پیدا کیږي. د چنګاښ د کورنۍ په غټو ډولونو لکه کوني کبر او استوانه اي چنګاښ (lobster) نر له ښځې غټ وي او پنسونه یې هم اوږده وي. په غټو ډولونو کې بل د جنسیت توپیر (sexual dimorphism) په نر کې د رانیولو غړي کوم چې د جنسي نزدیکت پر وخت د ښځې د رانیولو یا ښځې پسې د نښتلو لپاره کاروي، نر کې یې ځینې غړي موجود وي چې په مستقیمه توګه ښځې ته سپرم لیږدولو کې مرسته کوي.

نورمال د مثل تولید له هګۍ سره د سپرم اتحاد یا ادغام (fusion) ده، خو د چنګاښ کورنۍ ډېر غړي خاکي هګۍ کوي او خاکي بچیان زیږوي په دې مانا چې هګۍ یې د نر په سپرمو القاح شوې نه وي. دا ډول د مثل تولید کونکي چنګاښونه د پارتېنو جینیتیک (parthenogenetic) په نامه یادیږي.
د چنګاښ د کورنۍ د ځینو ډولونو ښځې خپلې هګۍ په اوبو کې ازادې پرېږدي لکه د کالانوس ډول (Calanus) چې یو کوپیپوډ (copepod) ده. همداسې مالا کوستراکان (malacostracan) چې د باتینېلاسیا (Bathynellacea)، اناسپیداسیا (Anaspidacea)، او اوفوزیاسیا ډلو (Euphausiacea) ډلو غړي دي خپلې هګۍ د سینې پسې نښتو غړو کې ګرځوي.

له هګۍ پیدا شوي لاروا بچیانو ته یې د ( nauplius) نوم اخلي، د بدن جوړښت یې ساده وي، په برخو وېشل شوی نه وي، درې جوړه ضمیمې لري چې ژامې او پنسونه (antennules, antennae, and mandibles) دي، او یوه سترګه لري.
د سیریپېډ (cirripedes)، اوستراکوډ (ostracods)، برانکیوپوډ (branchiopods)، کوپیپوډ (copepods)، دیکاپوډ (decapod) او د تېکوستراکا فرعي ډله نوپلیوس (subclass Thecostraca) نوپلیوس لاروای لري. ډېرې نور

يې جنيني (embryonic stages) دورې لري او يا يې لاروای بچيان نوپليوس ته ورته وي.

انسانانو ته يې غټې ډولونه ارزښت لري چې عمدتا ديکاپوډ دي. د ارام سمندر په شمال او سوېل برخو کې کب نيونکي د سوداګرۍ لپاره د اوبو ملخان (shrimps)، د اوبو ملخ ته ورته چنګاښ (prawns)، استوانه اي ازغن چنګاښ (spiny lobster) او پاچا کوني کبر (king crab) نيسي. په اروپا او شمالي امريکا کې د خوړ وړ چنګاښ نيله کوني کبر (blue crab)، ډانجنېس کوني کبر (Dungeness crab)، ډبره کوني کبر (stone crab) دي کوم چې د کب نيونکو لخوا نيول کيږي. په سوېلې امريکا کې يو ډول برنکل ده چې اوږدوالی يې تر ۲۷ سانتي متره (۱۱ انچه) پورې رسيږي، د ډول نوم يې بالانوس پسيتاکوس (Balanus psittacus) ده د خوړو وړ ګڼل کيږي. د فرانسې او هسپانيا خلک بيا د ميټيلا پوليسيپس ډول برنکل (Mitella pollicipes) خوري. په جاپان کې برنکل ساتل کيږي او کله چې غټ شي ټوټه ټوټه کيږي او په ځمکو کې د سرې په توګه کار ترې اخيستل کيږي. د چنګاښ د کورنۍ ځينې ډولونه د سوداګريزو کبانو خواړه دي.



# کلک پوسته سپږې - Crustacean louse

په انګرېزۍ کې یې جمع (Crustacean Lice) ده، مختلف ډوله په اوبو کې ژوند کونکي بې شمزي (غېرې فقاریه) دي چې په فرعي فایلم کروستاسیا ( subphylum Crustacea) او فایلم ارتروپوډا (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي او د کب پرازیت ګڼل کیږي. په کلک پوسته سپږو کې د کب سپږې چې د برانکیور فرعي کلاس (subclass Branchiura) ده، کوپیپوډ د کب پرازیت چې د کوپیپوډا فرعي کلاس (subclass Copepoda) ده، ایزوپوډ او امفایپوډ د کب پرازیت چې د مالاکوستراکا کلاس (class Malacostraca) ده شاملې دي. کلک پوستې سپږې ممکن د کب خولې کې ځان پټ کړي او یا هم د برانشونو د پوښونکي هډونکي لاندې پټې شي، ځینې یې د کب په پوستکي پسې ځان نښلوي.



# دیکا پوډ - لس پښي - Decapod

تر ۸۰۰۰ زیات ډولونه لري چې د دیکاپوډا تر ۸۰۰۰ زیات ډولونه لري چې د دیکاپوډا ډله (order Decapoda) او ارترپوډا فایلم (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي او کوني کبر (crabs)، د اوبو ملخ (shrimps)، استوانه اي چنګاښ (lobsters)، منزوي کوني کبر(hermit crabs) پکې شامل دي. د پښو اته جوړو ته يې پیرایپوډ (pereiopods) وايي. نوم يې له یونانۍ ژبې اخیستل شوی او مانا يې لس پښې دي. د دې ډلې ټول غړي يو بل سره په جوړښت او کچه کې خورا زیات توپیر لري. د ماکروروس ډول (macrurous) چې د اوبو ملخ ته ورته ده د بدن کچه يې په ځینې ډولونه کې تر ۱ سانتي متره (۰,۵ انچه) پورې ده، اوږده شوې تنه یا بدن لري، استونه اي پښې لري، اوږده شوې خېټه لري. براکیورېس (brachyurous) ډولونه يې کوني کبر ته ورته شکلونه لري په کوم کې چې غټه کوني کبر (spider crab) تر ۴ مترو پورې پراخې شوې پښې لري.
دیکا پوډ اساسا سمندري ژوي دي او په ګرمو اوبو کې پرېمانه پیدا کیږي. ځیني د اوبو ملخان (shrimps) په سمندر کې ژوند کوي او بدن يې سپک غړي لري چې د فوټوفورېس (photophores) په نامه یادیږي کوم چې په خوړو کې مرسته ورسره کوي. د دیکاپوډ له پېژندل شو ډولونو ۱۰٪ په تازه اوبو کې او ځمکه ژوند کوي.



# Dungeness crab - ډانجنېس کوني کبر

د ډول نوم یې کینسر مجسټر (Cancer magister) ده، د خوړو وړ ګڼل کیږي، د دیکاپوډا په ډله (order Decapoda) او د کروستاسیا په کلاس ( class Crustacea) کې ډلبندي شوی. د ارام سمندر د سمندر غاړو په اوږدو کې له الاساکا تر کلیفورنیا پورې موندل کیږي. غټ کوني کبر ده او په سودا ګریزه توګه ارزښت لري. د نر د بدن اوږدوالی یې له ۱۸ تر ۲۳ سانتي متره (۷ تر ۹ انچه) پورې او سور یا بر یې له ۱۰ تر ۱۳ سانتي متره (۴ تر ۵ انچه) پورې وي. ملا یې سور رنګه نصواري رنګ لري خو پېښې او لاندې خېټه یې زېړ رنګ لري.



# ښاپیرۍ د اوبو ملخه - Fairy shrimp

د انوستراکا ډلې (order Anostraca) غړې دي، ښاپیرۍ د اوبو ملخه نوم ځکه ورته اخلي چې حرکت او رنګونه یې ښکلي دي. ځینې یې تر ۲,۵ سانتي متره (۱انچ) پورې اوږدیږي. د اروپا، د مرکزي اسیا، د شمالي امریکا په لویدیځه سیمه کې او د افریقا د وچو سیمو په تازه اوبو او بندونو کې پیدا کیږي. په اروپا کې یې تر ټولو عام ډول کیروسېفالوس دیافانوس (Chirocephalus diaphanus) ده، او د شمالي امریکا تر ټولو عام ډول یې اوبرانکیپوس ویرنالیس (Eubranchipus vernalis) ده.



# وايلون يا وايلېن وهونکی کوني کبر - Fiddler crab

په انګرېزۍ کې ورته (calling crab) نوم هم اخلي، د کوني کبر تقريبا ۶۵ ډولونه دي، د ديکاپوډا په ډله (order Decapoda) او د کروستاسيا په فرعي فايلم (subphylum Crustacea) کې ډلبندي شوي. وايلون يا وايلن وهونکی کوني کبر نوم پرې ځکه ايښودل شوی چې يوه پنجه يا پښه يې له نورو ډېره غټه ده او پورته يې نيولې وي او د ګرځېدو پر وخت يې ښوروي کومه چې وايلون ته ورته والی لري مګر په ښځه کې يې دا پښې ورې دي. که د نر دا پښه يې ماته يا پرې شي بېرته وده کوي. د ګرمو سيمو په سمندر غاړو کې پربمانه پيدا کيږي او ډليز ژوند سره کوي. په هغو ژورو ځايونو کې د اوبو لاندې ژوند کوي چې ژوروالی يې تر ۳۰ سانتي متره (۱ فټ) پورې وي. خواړه يې الګی او نور اورګانيک يا عضوي توکي دي.



# د کب سپږه - Fish louse

په انګرېزۍ کې ورته (carp louse) نوم هم اخلي، جمع يې ( fish lice or carp lice) ده، د برانکيورا فرعي کلاس (subclass Branchiura) غړي دي، د هغو سمندري او تازه اوبو د کبانو پرازيت دي چې کډوال کيږي. د دې سپږو تر اوسه ۱۲۰ ډوله مطالعه شوي چې ډيری يې د ارګولوس نسل (genus Argulus) سره تړاو لري. هګۍ ته ورته يا بيضوي شکل لري او کاراپاس يا د ملا کاسه (carapace) يې پراخه ده. سترګې يې ترکيبي دي، د زبېښلو غړي يې غټ دي، څلور جوړه لامبو وهونکې پښې لري.په برخو نا وېشل شوې نرۍ خېټه لري. د بدن اوږدوالی يې له ۱۰ تر ۳۰ ملي متره ( ۱,۲ تر۰,۴ انچه) پورې رسيږي. لکه د نورو پرازيتونو په څېر خپلې هګۍ په بدن پسې نښتې نه ګرځوي بلکې يو ځای کې يې اچوي.



# ګامارید – Gammarid

د ګاماریدای کورنۍ (family Gammaridae) ټول غړي دي، ګامارید نوم هغو امفای پوډ ته هم کاریږي چې د ګاماروس نسل (genus Gammarus) غړي دي. د بدن شکل يې په بنسټيزه توګه امفای پوډ ته ورته والی لري. يو بل اړخ يې بهر ته وتلې ځوربه شوې برخه لري، ۷ جوړه قدم وهونکې په سيني پسې نښتې پښې ( thoracic walking legs) لري چې لمړۍ دوه جوړه پښې يې تل غټې وي، شپږ جوړه په خېټې پسې نښتي غړي (abdominal limbs) لري د کومو چې لمړۍ درې جوړې د لامبو وهلو لپاره کاروي او وروستۍ درې جوړې د حرکت کولو لپاره کاروي. د بدن اوږدوالی يې له ۵ تر ۳۰ ملي متره (۰,۲ تر ۱,۲ انچه) پورې وي او په ټوله نړۍ کې يې تر اوسه ۵۰۰۰ ډولونه پېژندل شوي دي. اساسا په تازه اوبو کې ژوند کوي. خواړه يې اورګانيک يا عضوي توکي دي. ځينې ډولونه يې مردار شوي ژوي او ځينې ګیاه خوړونکي دي. پرازيتي ډولونه هم لري چې مېزبان يې بې شمزي او کبان دي. بچيان او هګۍ يې د هګيو په کيسه کې وده کوي.



## پېړی کوني کبر - Ghost crab

د اوسیپوډ نسل (genus Ocypode)ده، په انګرېزۍ کې ورته (sand crab)نوم هم اخلي، شل ډولونه لري چې د دیکاپوډا په ډله (order Decapoda)او کروستاسیا په کلاس (class Crustacea)کې ډلبندي شوي. تېزه منډه وهونکي دي، له نیو جرسي تر برازیل پورې سمندر غاړو کې پیدا کیږي. شکې ته ورته زېړ بخن رنګ لري. د پښو د اوږدوالي کچه یې خپلمنځ کې توپیر لرونکې ده او په پښو وېښته لري. ملا یې تقریبا مستطیل مربع ته ورته ده. تر یو متر پورې ژرو غارونو کې ژوند کوي. خواړه یې د شکې ګونګټې دي.



## غټ كوني كبر - Giant crab

د ډول نوم يې مكروچيرا كايمپفيري (Macrocheira kaempferi) ده، د غټې كوني كبر (spider crab) ډول ده، اصلي ځای يې دارام سمندر جاپان ته نږدې اوبه دي. له ۵۰ تر ۳۰۰ متره (۱۵۰ تر ۱۰۰۰ فټه) ژوروالي كې ژوند كوي. د پښو پراخوالی يې تر ۳,۷ متره پورې وي او وزن يې تر ۱۸ كيلو ګرامه (۴۰ پونډه) پورې رسيږي. د ديكا پوډا په ډله (order Decapoda) او د كروستاسيا په كلاس (class Crustacea) كې ډلبندي شوي. د فايلم ارتروپوډا (phylum Arthropoda) تر ټولو غټ بې شمزي پيژندل شوی غړی ده.



# Gribble – ګريببل

سمندري چنګاښ ده چې په لرګيو کې سوريان کوي، شل ډولونه لري کوم چې د ليمنوريا نسل (genus Limnoria) جوړوي او د ايزوپوډا په ډله کې ډلبندي شوي. په اوبو کې پر ډوب شوي لرګي، الګي او يا د اوبو په سر روانو لرګيو خپل ځان تغذيه کوي.
ليمنوريا ليګنورم ډول (Limnoria lignorum) چې د شمالي نيمې کرې په ټول سمندر کې پيدا کيږي تر ۵ ملي متره (۰,۲ انچه) پورې اوږدوالی لري. د بدن رنګ يې خړ او په ۱۴ برخو وېشل شوی ده. په لرګي کې تر ۱۲ ملي متره پورې غار باسي. ليمنوريا ترپينکتاتا (Limnoria tripunctata) په اتلانتيک سمندر کې له انګلستان څخه تر وينزيويلا پورې ژوند کوي او په ارام سمندر کې له کليفورنيا تر مکسيکو پورې پيدا کيږي. ليمنوريا پي فېفېري (Limnoria pfefferi) ډول د هند په سمندرګي او ارام سمندر کې شته دي، ليمنوريا ساسېبوينسيس ډول (Limnoria saseboensis) د جاپان او سوېلي امريکا په سمندر غاړو کې دي.



# منزوي کوني کبر - Hermit crab

د پاګوریدای کورنۍ (family Paguridae) کوینو بیتیدای کورنۍ ( family Coenobitidae) ټول غړي دي کوم چې په دیکا پوډا ډله (order Decapoda) او کروستاسیا کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. د خپل بدن د ساتنې لپاره د حلزون صدف کاروي او لامل یې داده چې بدن یې کاراپاس یا سخته ساتونکې کاسه (carapace) نلري. پرته له صدف څخه د نورو ښکار کوونکو ژو پر وړاندې ډېر زیان منونکي دي.

د ټولې نړۍ په شګه او خټې لرونکو سمندر غاړو کې پیدا کیږي. کم وخت پر ځمکه او او ونو کې هم تېروي. بدن یې دوه جوړه انتنونه (antennae)، پنځه جوړه پښې لري، د پښو له لمړۍ جوړې څخه یې پنسونه یا کیلای (chelae) جوړیږي. د خپلو پښو په دوېمې او درېمې جوړې قدم وهي، په څلورمه او پنځمه جوړه پښو باندې د حلزون صدف نیسي.

ښځینه یې په خېټه کې ضمیمې لري د کومو په ذریعه چې خپلې هګۍ له ځان سره نیولې ګرځوي. واړه بچیان یې لاروال دوره په اوبو کې تېروي، او د شکل له تغیر کولو (metamorphose) وروسته د واړه کوني کبر شکل ته بدلیږي. کله چې د شکل تغیر وکړي نو د ځان ساتنې لپاره د حلزون صدف لټوي. بدن یې چې کله وده وکړي زوړ صدف غورزوي او د خپل بدن له کچې سره برابر صدف لټوي. د منزوي چنګاښ ځینې ډولونه د ونو د ساقې په تونلونو کې ژوند کوي.



# پټ مخی د اوبو ملخ - Hooded shrimp

د کماسیا ډلې (order Cumacea) ټول غړي دي، لمړی ډله یې پېراکاریدا (superorder Peracarida) ده. سر او سینه یې پراخه او ګرد شوي وي، د انعطاف وړ خېټه او د پنجې په څېر لکۍ لري. تر اوسه یې ۱۰۰۰ ډولونه پېژندل شوي. د ډېرو د بدن کچه له ۲ تر ۱۰ ملي متره (۰,۰۸ تر ۰,۴ انچه) پورې وي وي مګر د شمالي قطب دیاستلیس ګوډ سیري ډول (Diastylis goodsiri) تر ۳۰ ملي متره پورې رسیږي. په کمو ژورو اوبو کې پرېمانه پیدا کیږي خو په ژورو سمندرونو کې هم شته. ډېری یې ځان په شګه یا خټه کې خښوي او په وړو مایکروسکوپي ژو ځان تغذیه کوي. ټول ډولونه یې تقریبا ښه لامبا وهلی شي په ځانګړې توګه نران یې چې د شپې لخوا د اوبو سر ته را خیژي.



# نعل ډوله د اوبو ملخ - Horseshoe shrimp

په سېفالوکاريدا فرعي کلاس (subclass Cephalocarida) او کروستاسيا کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. نعل نوم پرې ځکه اېښودل چې شکل يې د اس نعل ته ورته ده. تر اوسه يې ۹ ډوله پېژندل شوي او لمړی ډول يې په لمړي ځل کال ۱۹۵۵ کې مطالعه شو.
سترګې نلري، يوازې په خېټه کې ضميمې لري او هيرما فروډيتيک (hermaphroditic) دي په دې مانا چې د نر او ښځې جنسي غړي لري. پښې يې ازغي لري په کومو چې له اوبو څخه خواړه رانيسي. د ( Hutchinsoniella macracantha) ډول يې تر ۳۷ ملي متره (۱,۵ انچه) پورې اوږديږي او د ارام سمندر په شمال ختيځو اوبو کې ژوند کوي. لايټيلا انسيسا ډول (Lightiella incisa) تر ۲,۶ ملي متره (۰,۱۰ انچه) پورې اوږده شته او د پورتو ريکو سره اوبو کې پيدا کيږي. لايټيلا سېېرېنديپيتا ډول (serendipita Lightiella) تر ۳,۲ ملي متره (۰,۱۳ انچه) پورې ده او د کليفورنيا د سمندر غاړو اوبو کې ژوند کوي. د سندېرسيلا اکوميناتا ډول (Sandersiella acuminata) تر ۲,۴ ملي متره اوږده پيدا کيږي او له جاپان سره نږدې اوبو کې ژوند کوي.



## Isopod - ایزوپوډ

د ایزوپوډا ډلې (order Isopoda) ټول غړي دي، د کروستاسیا په کلاس ( class Crustacea) کې ډلبندي شوي. مختلف شکلونه لري, تازه اوبو، وچه ځمکه او سمندر کې ژوند کوي. ډېری یې ازاد ژوند لري خو د سمندر ځیني ډولونه یې په نورو ژو کې پرازیت دي. تقریبا ۱۰۰۰۰ ډولونه لري تر ټولو واړه یې له ۰,۷ تر ۳۵ ملي متره پورې اوږده دي لکه ګریبل (gribble) او تر ټولو غټ یې تر ۳۵ سانتي متره (۱۴ انچه) پورې اوږدېږي لکه د کربین سمندر باتینوموس جیګانتیوس ( Bathynomus giganteus). ملا یې زغرې ته ورته قاب باندې پوښل شوې وي، سینه (thorax) یې ۷ برخې لري، خېټه یې شپږ برخې لري، بدن یې ۶ جوړه غړي لري خو په ځینې ډولونه کې دوه جوړې او په ځینو کې اته جوړه د بدن غړي هم شته.



## جناه کوني کبر - Jonah crab

د شمالي امريکا د کوني کبر ډول ده، د ډول علمي نوم يې کينسر بوريالیس (Cancer borealis)او له ډانجنیس کوني کبر (Dungeness crab) سره نږدې تړاو لري.



### کیلپ کوني کبر - Kelp crab

په ارام سمندر کې ژوند کوونکی د غښې کوني کبر(spider crab)ډول ده.



# Krill – کرېل

د سخت پوستو ټول هغه غړي دي چې په اوفوزياسيا ډله(order Euphausiacea)کې شامل دي او د اوفوزيا نسل (genus Euphausia) جوړوي. اوفوزيد (Euphausiids) د اوبو ملخ (shrimp) ته ورته ژوي دي. د اوبو له ملخ سره يې توپير په لامبو وهونکو پښو کې برانشونه (gills) دي او کمې پښې يې د خوړو لپاره بدلون مومي. د بدن اوږدوالی يې له ۸ تر ۶۰ ملي متره پورې ده. تر اوسه پورې ۸۲ ډولونه مطالعه شوي. بدن يې رڼا کوونکي غړي ( bioluminescent organs or photophores) لري او له همدې امله د ښکاري. د ډېرو نورو ژو لپاره د سمندر په ځينو برخو کې د خوړو په توګه زيات ارزښت لري. ځينې مرغان، کبان او نهنګان په ځانګړې توګه نيله نهنګ خپل ځان پرې تغذيه کوي. خپلمنځ کې لويه ډله سره راغونډيږي چې ډېر وخت د سمندر د اوبو سطحې ته نږدې او يا تر ۲۰۰۰ متره په ژوره کې وي.



# د ځمکې کوني کبر - Land crab

د ګیکار سینیدای کورنۍ (family Gecarcinidae) ټول غړي دي. د دیکاپوډا ډله (order Decapoda)او کروستاسیا کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. په ځمکه ژوند کوونکی کوني کبر ده چې یوازې د کم وخت لپاره بېرته سمندر ته ځي. مستطیل ته ورته بدن لري. د امریکا په تودو سیمو، لویدیځې افریقا کې ژوند کوي. ځینې ډولونه یې ځمکه کې تر ۸ کیلو متره لرې پورې ننوځي. وزن یې تر ۰,۵ کیلوګرامه او اوږدوالی یې تر ۱۱ سانتي متره پورې رسیږي.



# استوانه اي چنګاښ - Lobster

مختلف ډوله سمندري سخت پوستي چې د ارتروپوډا فيلوم (phylum Arthropoda)، ديکا پوډوا ډله (order Decapoda) کې شامل دي. ريښتينی استوانه اي چنګاښ (true lobsters) د هوماريدای يا نيفوروسيدای کورنۍ (Homaridae or Nephropsidae) جوړوي، ازغن استوانه اي چنګاښ (crayfish) د پالينوريدای کورنۍ (Palinuridae)، ښېلچه يا چپلکه استوانه اي چنګاښ (slipper, Spanish, or shovel lobsters) د سيلاريدای کورنۍ (Scyllaridae) د ژور سمندر استوانه اي چنګاښ (deep-sea lobsters) د پوليکيليدای (Polychelidae) کورنۍ کې شامل دي. ټول په سمندر کې ژوند کوي او ډېری يې د شپې لخوا د سمندر تل کې فعال وي. خواړه يې کبان، مردار شوي ژوي او د نرم بدن حلزون دي. ازغن چنګاښ (crayfish) يې د انسانانو لپاره د خوړو په توګه سوداګريز ارزښت لري.

بدن يې سخت ده، په برخو وېشل شوی، پنځه جوړه پښې لري او يوه بله جوړه پښې چې ډېر وخت په پنسونو بدليږي او معمولا يو پنس له بل څخه غټ وي. د خوځښت وړ ساقې کې ترکيبي سترګې لري. دوه اوږده انتونونه لري. عضلاتي لکۍ لري چې د لامبو وهلو لپاره يې کاروي.



# د اوبو ښکاري ملخ - Mantis shrimp

د سمندري چنګاښ ټول هغه غړي دي چې په ستوماتوپوډا ډله (order Stomatopoda) کې ډلبندي شوي په ځانګړې توګه د سکویلا نسل (genus Squilla) غړي. مانتیس نوم یې ځکه پرې ایښی ځکه چې د پښنو دوېمه جوړه یې ډېره اوږدېږي او مانتید یا مانتیس حشرې ( mantid, or mantis) پرې ښکار کوي. دا پښې د ځینو ژو د صدف ماتولو لپاره هم کاروي، له دې پرته په کبانو پورې هم ځان د همدې پښنو په مرسته نښلوي.

تر ۳۵۰ زېات ډولونه لري او د بدن کچه یې له ۱ تر ۳۰ سانتي متره پورې اوږده شته. د سمندر غاړو په اوبو کې پیدا کیږي خو تر ۱۳۰۰ متره ډوبو اوبو کې هم شته دي. ډېری یې په غارونو کې ژوند کوي. دواړه غټ او واړه لاروای بچیان یې ښه لامبو وهونکي دي.



# Mary Jane Rathbun - ماري جېن راتبن

د جون میاشتې په ۱۱ نېټه، کال ۱۸۶۰، د متحده ایالتونو د نیویارک په بوفالو کې زېږېدلې او د اپرېل په ۴ نېټه، کال ۱۹۴۳، په واشنګټن ډي سي کې مړه شوې. د امریکا ژوي پېژندونکې وه چا چې د کروستاسیا یا د چنګاښ کورنۍ (Crustacea) د ډلبندۍ (taxonomic) بنسټیز مالومات تاسیس کړي.

په ۱۸۸۱ کې یې د خپل ورور رېچارډ راتبن (Richard Rathbun) په غوښتنه له ( Woods Hole Marine Research Center in Massachusetts) سره رضاکارانه کار پیل کړ. له سمندري چارو سره یې علاقه ډېره ژر پیدا شوه او په کال ۱۸۸۴ کې د ( the U.S. Fish Commission) لخوا دنده ورکړل شوه تر څو د سمندري ژو نوملړ یا منځپانګه ترتیب کړي. په کال ۱۸۸۶ کې یې دنده ( Division of Marine Invertebrates of the National Museum in Washington, D.C) ته بدله شوه او هلته یې د تعمیر ساتنه کوله.

په کال ۱۸۹۱ کې یې سایسنسي لیکنې پیل کړې او پرله پسې یې تقریبا ۱۵۸ لیکنې د سخت پوستو په اړه خپرې کړې. ډېرى لیکنې یې د ډلبندۍ په اړه وې په کومو کې چې دواړه اوسمهال ژوندي او فوسیلي ژوي تشرېح شوي دي. د هغې پر لیکنو ډېرو نورو ژوي پېژندونکو او ایکولوجیستانو تکیه کوله.



# مول کوني کبر - Mole crab

د دول علمي نوم یي ابمېریتا یا هیپا تالپوایدا (Emerita, or Hippa, talpoida) ده. په انګرېزۍ کې ورته د شکو بګ حشره (sand bug)هم وايي. د اتلانتیک سمندر کوني کبر ده. مول په انګرېزۍ کې راندې صحرايي موږک ته وايي کوم چې ځمکه کې کندې باسي او دا کوني کبر هم مول ته ورته کنده د سمندر غاړو په شګو کې باسي. د بدن اوږدوالی یې تر ۳ سانتي متره پورې رسیږي او هګۍ ته ورته شکل لري.



# صدف کې بند اوبلن ملخ - Mussel shrimp

په انګرېزۍ کې ورته (seed shrimp, or ostracod) نومونه هم اخلي. په اوستراګودا فرعي کلاس (subclass Ostracoda) او کلاس کروستاسیا (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. شکل يې صدف کې بند حلزون (mussel) ته ورته ده او نوم يې هم د حلزون له نوم څخه اخيستل شوی. له ډېرو چنګاښونو سره فزيکي توپير لري. بدن يې ډېر لنډ ده او په برخو وېشل شوې بهرنۍ برخې نلري. تقريبا ۶۶۵۰ ډولونه لري کوم چې په وچه ځمکه، تازه اوبو او سمندر کې ژوند کوي. تر اوسه يې تقريبا ۱۰۰۰۰ فوسيلي ډولونه پېژندل شوي کوم چې د کمبريان دورې ( Cambrian Period) دي (۵۴۲ تر ۴۸۸ ميليونه کاله وړاندې تر منځ). تر ټولو واړه يې تر ۲ ملي متره او تر ټولو غټ يې تر ۲۳ ملي متره پورې اوږديږي.



# بريټ لرونکی د اوبو ملخ - Mustache shrimp

د ازادو ژوند کوونکو سمندري ژو کوچنی ګروپ ده کوم چې لومړني ژوي ګڼل کيږي. تر اوسه يې يوازې څو ډوله پيژندل شوي او لمړی ډول يې په لمړي ځل په کال ۱۹۴۳ کې د متحده ايالتونو په .ووډز هول کې ومو ندل شو



# Opossum shrimp - اوپوسم داوبو ملخ

په انګرېزۍ کې ورته (possum shrimp or mysids) نومونه هم اخلي. د مایسیداسیا ډلي (order Mysidacea) ټول غړي دي. تر اوسه یې تقریبا ۱۰۰۰ ډولونه پېژندل شوي چې ډېری یې په سمندر کې خو ځیني ډولونه یې مالګینو اوبو او یو څو ډولونه په تازه اوبو کې ژوند کوي. ډېری یې له ۱ تر ۳ سانتي متره پورې اوږدوالی لري. ښځینه یې یو ډول کڅوړه لري په کوم کې چې نابشپړ پیدا شوی بچیان تر څو اوونیو پورې ژوند کوي.



## Pea crab - نخودي کوني کبر

د پینوتېرېس نسل (genus Pinnotheres)ده، د دیکاپوډا په ډله (order Decapoda) کې شامل دي، د صدف لرونکو حلزون د صدف په خالي ځای کې ژوند کوي. په نورو ژو کې میزبان کیږي مګر له دې ژو خپل ځان نه تغذیه کوي.



# پییر اندرې لاترۍ - Pierre-André Latreille

د نومبر په ۲۹ نېټه، کال ۱۷۶۲، د فرانسې په بریو له ګی یارد کې زېږېدلی او د فیبروري په ۶ نېټه، کال ۱۸۳۳، پاریس کې مړشوی. د فرانسوي ژوي پېژندونکی (zoologist) وو او د عیسویانو د کتولیک ډلې راهب وو څوک چې د حشرو پېژندنې (entomology) پلار ګڼل کیږي. پییر اندرې په لمړي ځل له تفصیل سره حشرې او سخته پوسته ژوي ډلبندي کړي.

د طبیعي تاریخ شاګرد وو او مذهبي زده کړې یې کړې وې تر څو راهب شي. په کال ۱۷۸۶کې، په پاریس کې پر خپلې دندې ټاکل شوی وو. لمړي کتاب یې ( Précis des caractères génériques des insectes disposés dans un ordre naturel) د حشرو پېژندنې لپاره د ساینسي مطالعې بنسټ کېښود.
له دې پرته پییر اندرې د ۱۸۰۲–۰۵ کلونو تر منځ ( Histoire naturelle générale et particulière des crustacés et insectes, 14 vol) یې لیکلی او خپور کړی.



# د لرګیيو پېل وړې سپږې - Pill bug

د دوه کورنيو ارماديلي ديداى (Armadillididae)او ارماديليداى (Armadillidae)ټول هغه سخت پوسته غړي دي چې په وچه کې ژوند کوي. په ايزوپوډا ډله (order Isopoda) کې ډلبندي شوي. که چېرې وخوځول شي خپل بدن د توپ په څېر تاووي. د لرګي سپږې (wood louse) په نامه هم يادېږي.



# سور کوني کبر - Red crab

.د ارام سمندر کوني کبر ده او له ډانجنېس کوني کبر سره ډېر نږدې تړاو لري



# د شګو ګونګټه - Sand flea

په انګرېزۍ کې ورته (sand hopper, beach flea, or beach hopper) نومونه هم اخلي.
تقریبا ۶۰ ډوله سخت پوستي دي چې د تالیتریدای کورنۍ (family Talitridae) جوړوي او د امفیوپوډا په ډله (order Amphipoda) کې ډلبندي شوي.
اروپايي د شګو ګونګټه د سمندر غاړو په شګه کې ژوند کوي، د بدن اوږدوالی یې تر ۱,۵ سانتي متره پورې رسیږي. د ورځې لخوا په شګه کې ځان خښوي او د شپې لخوا فعاله وي. خواړه یې اورګانیک خوسا شوي توکي دي.



# سکمپي استوانه اي چنګاښ - Scampi

جمع يې هم (Scampi) ده په انګرېزۍ کې ورته ( Dublin Bay Prawn, or Norway Lobster) نومونه هم اخيستل کيږي، د ډول علمي نوم يې نېفروپس نوروېجيکوس ( Nephrops norvegicus) ده، د خوړو وړ استوانه اي چنګاښ يا لوبسټر ده، د ديکاپوډا په ډله ( order Decapoda) او د کروستاسيا په کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوی. له شمالي افريقا تر ناروې او ايسلنډ پورې سمندر کې پيدا کيږي. ايټاليا، انګلستان، فرانسه او دنمارک يې د سوداګرۍ لپاره نيسي.

سکمپي استوانه اي چنګاښ دسمندر په تل کې د نرمې څمکې په غارونو کې ژوند کوي او له ۱۰ تر ۲۵۰ متره ژورو اوبو کې پيدا کيږي. د بدن اوږدوالی يې تر ۲۰۰ ملي متره (۸ انچه) پورې او وزن يې تر ۲۰۰ ګرامه پورې رسيږي.



# د اوبو ملخ - Shrimp

د نتان سیا فرعي ډلې (suborder Natantia) تقریبا ۲۰۰۰ ډولونه دي کوم چې په دیکاپوډا ډله (order Decapoda) او کروستاسیا کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. نیمه روڼ بدن لري، د انعطاف وړ خېټه لري کومه چې پکي ته ورته لکۍ باندې پای ته رسېدلې. د بدن ضمیمې یې په لامبو وهونکو غړو بدلیږي اوږده انتنونه لري.

د اوبو ملخ په تازه روانو اوبو کې، بندونو کې او ټولو سمندرونو کې ژوند کوي. ډېر ډولونه یې خوړل کیږي او سوداګریز ارزښت لري. د بدن اوږدوالی یې له څو ملي متره تر ۲۰ سانتي متره پورې شته خو منځنۍ کچه یې له ۴ تر ۸ سانتي متره پورې ده. غټ ته یې ځیني خلک پران (prawn) نوم اخلي.

خواړه یې بوټي، واړه ژوي دي خوځیني یې په مردارو شو ژو هم ځان تغذیه کوي. ښځی یې له ۱۵۰۰ تر ۱۴۰۰۰ پورې هګی کوي کومې چې په لامبو وهونکو پښو پسې نښلوي. واړه لامبو وهونکي لاروای بچیان یې مخکي تر دې چې ځوان (juvenile) شي پنځه لاروال دورې سرته رسوي.



# اسکلیټي د اوبو ملخ - Skeleton shrimp

د کپرېلیدای کورنۍ (family Caprellidae) غړي دي، د امفیپوډا ډله (order Amphipoda) کې ډلبندي شوي, د کپرېلا نسل (Caprella) جوړوي، نوم یې د بدن له شکل څخه اخیستل شوی. ډېری یې ښکار کوونکي دي او په نورو ژو ځان تغذیه کوي مګر ځینې یې خوسا شوي اورګانیک توکي خوري.



# سو بګ وړې حشرې - Sow bug

وړې په ځمکه یا وچه کې ژوند کوونکې سخت پوستې حشرې دې، د ایزوپوډا ډله ( order Isopoda) کې ډلبندي شوې او د اونیسکس نسل (genus Oniscus) جوړوي.



# غښه یا غونډل کوني کبر - Spider crab

د دیکاپوډ یا لس پښیو (decapod) ټول ډولونه دي، دمجیدای کورنۍ (family Majidae) غړي، د کروستاسیا په کلاس (class Crustacea) کې ډلبندي شوي. . ډبل بدن، کګي شي پښوې لري، ډېر ورو حرکت کونکی ده .په ګرمو اوبو کې يې انسانان د خوړو لپاره نیسي. تر ټولو واړه يې د اروپا غښه چنګاښ ده د نسل نوم يې مایکروپوډیا روستراتا (Macropodia rostrata) ده او بدن يې تقریبا ۱ سانتي متر قطر لري. تر ټولو غټ يې غټ غونډل یا غښه کوني کبر (giant crab) ده کوم چې له جاپان سره نږدې اوبو کې پیدا کیږي، د ډول نوم يې ماکروکیرا کا ایمپفیري (Macrocheira kaempferi) ده، د پښو تر منځ فاصله يې تقریبا ۴ متره ده.



# لامبو وهونکی کوني کبر - Swimming crab

د پورټونیدای کورنۍ (family Portunidae) غړي دي، په دیکا پوډا ډله (order Decapoda)، کروستاسیا کلاس (class Crustacea) او فایلم ارتروپوډا (phylum Arthropoda) کې ډلبندي شوي. د پښو وروستۍ پنځمه جوړه يې د پایډل شکل کې ډبليږي او د لامبو وهلو لپاره يې کاروي. په دې کورنۍ کې نیله کوني کبر هم شامل ده کوم چې د خوړو وړ ګڼل کيږي.

